# کندهار

Kandahar. Kabul
Vol.3, No.11, Dalw 1341
(January 1963)



د کندهار د فیل کوه د برېښنا سټیشن

# د دنیا ښایسته شیان

یوه نقاش څو کاله خوارې وکښله ترڅو یې یوه قیمتي او خورا ښایسته تابلو جوړه کړه لیکن بیا هم د خپل ایجاد څخه راضي نه وو.

دی په دې پسې تل گرځېده چې څوک ورته د یوه ښایسته شي تابلو جوړه کړي او ځکه د خپل مطلب د پلټلو په ترځ کې ویوه دیندار سړي ته ورغی او د هغه عقیده یې د ښایسته شي په باره کې وپوښتله.

**هغه ورته وویل: چې په دنیا کې تر ایمان ښایسته شی بل نه شته.**

نقاش بیا وخپلو پلټلو ته دوام ورکړ ترڅو چې د یوه مېړه او ماینې سره مخامخ شو چې په نژدې وخت کې یې واده سره کړی وو.

د بیا هغه پوښتنه چې له دیندار سړي څخه یې کړې وه له دوی څخه هم وکړه.

دوی په ځواب کې ورته وویل: «په دنیا کې تر هر څه ښایسته شیان مینه او محبت دی، ځکه عشق ناداري په ثروت، تیاره په روښنائي او غم په خوشالي بدلوي، په دنیا کې تر عشق ښایسته شی وجود نلري او زوال پېله عشق څخه په هیڅ شی نه ارزي».

نقاش بیا هم په خپله ورکه پسې گرځېده ترڅو د یوه سرتېري جگړن سره مخامخ شو چې د سیند پر غاړه په فکر کې ډوب ناست وو.

نقاش له ده سره خبرې اترې شروع کړې کله چې هغه سرتېري او فکرجن ژوبلور د نقاش له مطلب څخه پوه شو نو یې داسې ورته وویل: «سوله په ټوله دنیا کې خورا ښایسته او جنگ خورا بد شی دی. که سوله په نړۍ کې وي نو تاسې کولای شئ چې ښایست په انتهائي ځلا او خوبۍ کې ووینئ».

نقاش سر کښته وځړاوه او د ځانه سره یې وویل:

**«ایمان، عشق او سوله. څرنگه کولای شم چې دا درې شیان په یوه تابلو کې مجسم کړم».**

کله چې نقاش ستړی ستومانه خپل کور ته راورسېدی سمدستي پوه شو چې خپله ورکه یې پیدا کړېده ځکه د ده د خپلو کوچنیانو په ښایسته سترگو کې ایمان او د خپلې گرانې ماینې په تبسم کې یې سپېڅلې مینه او د خپل کور په شاوخوا کې یې سوله او ارامي ولیدله چې هغه جگړن ورته ویلې وو.

نو ځکه نقاش په دنیا کې د خورا ښایسته شیانو د تابلو په کښلو بوخت شو.
کله چې د هغې تابلو کار پای ته ورسېدی نو د هغې تابلو نوم یې «کور» کېښود.

[کلیوال]

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

مسئول چلوونکی:

ا،م «کرزی»

اداره: د شهیدانو واټ

د دولتی مطبعی څنګ ته

د ۱۳۴۱ لمریز کال د [دلو] میاشت

د۱۹۶۳میلادی کال د [فروری] میاشت

د دریم کال ۱۱ ګڼه

پرله‌پسې ګڼه [۳۵]

ګا لنی «بیه»

په کندهار کی [۳۸] افغانی

په دننه مملکت کی [۴۴] «

په دباندنیوهیوادو کی یوډالر

## ددې ګڼې مضامین

# د ولسونو د بدلون عوامل

څرنګه چې د ژوندانه په لومړي حالت کې هرې
کورنۍ ځانته جلا معیشت درلود او د طبیعي
حوادثو لکه زلزلې، سیلابونو څخه به ئې په خپل
انفرادي قوت ځانونه ساتل، نو ځکه طبیعي

پېښې پر انساني ژوند غالبې وې وروسته تر
د برو پېښو د انسانانو فکر ته دا خیال راغې چې
باید څو کورنۍ چې په یوه محیط کې نسبتاً
ورڅرمه وي یو له بله راغونډې شي څو پښه وکړای

شي چې د خپل ژوندانه ارتیاوې رفع او د حوادثو
مقابله وکړي کله چې کورنۍ راټولې شوې او
قبیله پیدا سوه، د قبیلې د بقا دپاره د وخت د
ضرورت په اساس ځینې قواعد په وجود راغلل

چې هغو قواعدو قبیله له تېښت څخه ساتله، کله
چې قبیلوي ژوند د همدغې حیاتي ضرورتونو
په اساس په ولسي ژوند بدل سو نو دلته انسانان
مجبور شول چې ورو ورو دخواهشاتو د مخ نیولو

او د خوارانو د ژوند د بقا دپاره ځینې حدود
وټاکي که سړي ته ځیر شي نو دا به ثابته شي چې

دقوانینو واضعین په لومړي سر کې نادارو او
کمزوري انسانان وه څرنګه چې دوی اکثریت

د جامعې تشکیلوي او اکثریت هیڅکله د اقلیت
ظلم نیري او استثمار نشي منلای نو په یوه لوی
قوت سره د جامعې اراده تمثیل سوه او قوانین

په وجود راغلل او د ژوندلار او لېکه ښکاره شوه
وظایفو ټاکلي سوې او د جامعې د ټولو خلکو دپاره
د فکري انکشاف زمینه مساعده شوه ځکه نو
د قانون احترام د ځان احترام دی او که موږ ښیا

یو ژور نظر وکړو نو قانون په یوه اجتماعي حادثه
و بولو، نه د انسان فطري خواهش.

پخوانیو عالمانو د قانون موالید لکه: مدنیت
صنعت، دولت دانسان په طبیعت کې اخښلي شیونه

بلل ځکه نو انسان ته ئې د مدني بالطبع خطاب
کړی دی او دی ئې طبعاً د بدویت دښمن بللی دی
لېکن دا انسان سره نه بد او نه ښه خواهشات
ملګري دي او نه د مدنیت د مظاهرو شوقمن دی

هر څه چې دانسان د ژوندانه په سیر کې راغلي
دي هغه ټول د احتیاجاتو د پېړېدو له کبله دانساني
ژوند د بقا دپاره په عمل راغلي دي څرنګه چې په
لومړي سر کې انسانانو د خپلې ګېډې د مړولو

دپاره وښکار کولو ته مجبور وه نو ئې په ابتدائي
حالت کې پخپلو لاسو سره حیوانان نیول او

بېله دې چې پوخ ئې کړي او مالګه به ئې خوړل وروسته
تر دې کوم وخت ښائي یو سړي په ځنګل کې

ټېر بدی، بولر ګی ئې او پیدا ئې ولیدی دا ئې د ځان
سره د ښکار کولو دپاره واخیستي، کله چې دا
آله د ښکار کولو دپاره خوښه سوه نو ورو ورو

دې طريقې د هغه وخت په انسانانو کې تعميم پيدا کړ بل وخت بيا د ښکار د نيولو دپاره د يوه په لاس نيوره کاڼي ورغلي بدې وسيله سره دى تر پخوا ډېر موفق سو چې خپل ښکار کړ نو له راولي او دا فکر ورته پيدا سو چې بايد د ښکار دپاره دغسې نيرې وسلې جوړې او برابرې سي، بل وخت بيا په سله ډېرو زمانو څخه دشپې په تياره کې چې يو کاڼي د يوه د لاسه لوېدلى او پر بل کاڼي موښتى دى نو د اور پښر کې څخني غور ځېدلى دى دې واقعې د اور د پيدا کېدو دپاره زمينه مساعده کړه او وروسته د دوو کاڼو له موښلو څخه اور په وجود راغلى ځکه چې په نن عصر کې اتوم راکټ او مصنوعي سپوږمۍ د انسانانو د حيرت باعث ګرزېدلي دي ممکنه ده چې پخپله زمانه کې دى داور پيدا- کېدل هم دغسې دانسانانو په فکر کې تحير او تعجب ايجاد کړى وي ځکه چې اور د کټي اخيستلو وسيله ده نو ډېره نژدې ده چې همدغه د منفعت حس دې داور د پرستش سبب ګرزېدلى وي چې تر نن ورځې پورې هم ددې زړې عقيدې خاوندان د نړۍ په ګوښو کې ليدل کيږي . وروسته بيا د هوا د سړېدو او د ژمي د رانګ له اثره مجبور سول چې و نودو ځايونو نه ولاړ سي په دې دوره کې حيوانان هم اهلي سوي او د انسانانو د استفادې دپاره چمتو سوي وه دري په دې مها- جرتونو کې د نورو انسانانو سره په لار کې مخامخ سول چې د مادي منافعو دپاره ددوى او هغو ترمنځ جنګونه وشول . په دومړي سر کې به غالب قوم د مغلوب قوم نارينه وژل او ښځې به ئې دخپل خدمت او چوپړ دپاره استخدامول ، کله چې زراعت او کښت د همدغسې غير مترقيه لاروڅخه په وجود راغى نو بيائې د مغلوب نارينه د کښت او کار په چارو کې اخته کول چې د همدې ځايه غلامي په وجود راغله او د زراعت په دوره کې به د مغلوب قوم مځکې او ځايدادونه هم د غالب قوم په لاس کې لوېدله چې د استعمار دوره ئې هم بايد وبولو له دې ځاى څخه غلامي او استثمار ريښه نيسي ځکه چې غلامي او استثمار په بشري ژوند کې امتياز او ترجيح راولي او امتيازات همېشه د خوارو انسانانو د کرکې او تنفر باعث ګرزي او همدا نه سي زغملاى چې دخپل کار او زحمت محصول د نورو په جېبو کې وويني ځکه نو دې امتيا- زاتو او استثمار بشري ټولنو ته سخت تکانونه ورکړل او د ډېرى مودې دپاره خوراسخت او خونړي جنګونه د خوارانو او استثمار طلبو د لو ترمنځ وشول چې ددې جنګونو نمونې موږ د زاده روم په آثارو کې وينو وروسته تردې جنګونو او خونړيزيو څخه مظلوم او

نادار او انسانان سره را ټول

شول چې د خپل ژوند او مستقبل

غم و خوري ځکه چې دا کثريت

له لاري څخه د قانون په

جوړولو بريالی شول چې په

هغه کې مساوات او عدالت د

ټولو بشري دلو د پاره موجود و

خو افسوس چې دا قوانين او

ضوابط هم تر ډېره وخته پورې

په نړۍ کې و نه چلېدل غلامۍ

او استثمار بيا خپلې ريښې تر

ټولې ژورې پورې ټينګې کړي

خو پدې عصر کې د عقول او د

وينښتوب او د انسانانو د

بيداري له اثره بيا د

اقتصادي عدالت د قانون فکر

پيدا شو او ددې قوانينو په

رڼا کې د دنيا د يوې لوې

سيمې څخه د غلامۍ او استعمار

هيولا خپل منحوس وزرونه

ټول کړل او ان ورځ د دنيا په

هر ګوټ کې د قوانينو بوي

دا سې مجموعي ټوله انسانان

اميدواره دي چې د دوی د پاره

اقتصادي برابروالی او مالي امور

تنظيم کړي .

لاندې مقاله ښاغلی نيکولای دووريانکوف ليکلې ده ، پخوا هم دې چې د دې مقاله و لولو را ځوء چې لومړی دی و پېژنو چې څوک او څه ئې کړي دي ؟ دووريانکوف د شوروي اتحاد د علومو په اکاډيمۍ کې د اسيائي ملتونو په انستيتوت کې مطالعه او مصروفيت لري او ور کښې د ختيځو ژبو څانګې مشر او پروفيسر دی او په عين حال کې د افغان او شوروي د دوستۍ ټولنې معاون هم دی .

دووريانکوف د پښتو ټولنې افتخاري غړی دی او د اافتخار ئې ځانته ګټلی دی . ۲۱ کاله پخوا هغه وخت چې د دوهم اوی جنګ تر لا نړۍ د تهديد لاندې راوستي وه په داسې سختو شپو او ورځو کې ده د پښتو په زده کړه پيل و کړ او ددې وخت په ترڅ ل کې ئې د ولس علمي اثار د پښتو ژبې او پښتو ادبياتو په باره کې ليکلي او چاپ کړيدي او کومې مقالې چې ده په پښتو ليکلي دي ممکن هغه به لوستونکو د کابل مجلې او د ژبې په صفحو کې لوستلي وي .

په دې شپو ورځو کې چې دووريانکوف کابل ته راغلی دی ده د وينا له مخې ده د پښتو شروع کړ او د دوهم پښتم او د عمر ئې پوځلو پښتم تلين پوره شو ، موږ په همدې مناسبت ده ته تبريک وايو او نوره ئې هم توجه دې خوا ته غواړو . لاندې مقاله چې ده ليکلې ده موږ عيناً نشر کړه .

نيکولای دووريانکوف د پښتو ټولنې افتخاري غړی

## ژبه او کلتور

دژبې او کلتور مسئله د پښتو په باب اکه د نړۍ د نورو ټولو ژبو په نسبت بايد د نظر له دوو نقطو څخه و شمېرل شي :

۱- د ولس د عمومي کلتوري ترقۍ له سوي سره د ژبې رابطه او تابعيت .

۲- د ولس او ملت د کلتور د مشخصو څانګو سره د ژبې د ساختماني سيستم د ځينو برخو تماس او ګډه اغېزه .

دا ښکاره خبره ده چې د پښتو ژبې کمال او پرمخ تګ په ډېره

ځکه اوسني انسانان پوهيدلي دي چې حقوقي مساوات بېله

اقتصادي عدالت څخه په يوه جامعه کې امکان پذيره

نه دی .          ام کرزی

انــدازه سره د افغانستان د
عمومي کلتور سره پوره تعلق
لري او د ژبي مختلفي او جلا
برخي يعني تلفظي طــرزونه

لغات او ادبي سبکونه د پښتو
ويونکو د کلتور او ژوند له
تحولو شانګو سره کلک مربوط
دي اما د ژبي او کلتور ترمنځ

رابطا برعکس خاصيت هم لري
او هغه داچي [ ژبه د ملي کلتور
تر ټولو مهم شکل او هنداره ده
او د ملي کلتور د ترقي اساس

هم ژبه ده ] او په بل عبارت
[ کلتور دادي چي اجتماع او
ټولنه جوړوي او فکر کوي ]
او ژبه ئي د فکر کولو طريقه او

ترتيب دي مګر هغه دواړه يعني
ژبه او کلتور د تاريخي جريان
په ترڅ کي د پراو مشکل تغيير
پيدا کوي . خو دا د خپلي ترقي

په دوړو کي ځيني ارغوني شيان
بايللي او د هغو پر ځاي بېخي
نوي عناصر ځان ته ګټي .
د پښتو د کلتور او ژبي دپاره يو

کم بختنه او بد تقدير منځ ته
راغلي دي چي د دغو دپاره خطر

له پخوانيو څخه موجود ؤ او
هغه [ اسيميليشن ] او از ميدان
بيرون کردن ؤ . خو بيا هم
د داسي ژبو لکه : ايــرلاندي

(ايرليش) ، يوناني ، ارمنستاني
تاريخ او نورو ژبو مصيبتونه
ښئي چي د غو د ملي او قـــومي
روح احساساتو او د خپل مليت

پېژندني او متانتي او همدغه
رنګه د ملي او موروني ژبي د
رسمي اعتبار او افتخار د دفاع
د خپلواك کلتور او ژبي د

ساتني او مترقي کولو دپاره
مهم رول لوبولي دي . په دې
باره کي د هغو اقداماتو دپاره
چي ملي او وطن پالونکو قواؤ

د پښتو د ساتني او پرمختګ
دپاره اجرا کړي دي دلايل ډېر
اما اوس ئي د ذکر موقع نه ده .
اوس زما په نظر کي يوه خبره

د پاملوړ ده چي څه نه څه چي
د دې دپاره لازم دي خو تر اوسه
پوري لا نه دي عملي شوي ، بلکه
له هغو ټولو څخه چي اوس هم

عملي شوي دي څه نه څه لازم نه
ښــکاري .

لومړي بايد دا خبره ومنو چي
د پښتو ټولي برخي له کلتور
ژوند او حقيقي تاريخ سره يو
ډول مستقيمه رابطه نه لري .

مثلاً ګرامرئي داسي رابطه
نــه لري . وګوريء ! که د
مذکور په لهجه وائي چي موږ
واو ، او په ننګرهار کي وائي

چي موږ تږوو ، دغه خبره دا معني
لري چي داسي فرق د کلتور
د ترقي له توپير سره تړلي دي
سره له هغه چي وائي چي د ملت

ژبه ئي هم حقيقي تاريخ دي
خو که په کندهار کي وائي چي
ښار ځني او په لغمان کي وائي
چي له ښار نه دا خصوصيات د

هغو پښتنو قومونو ، قبايلو او
خپلو تو له اقتصادي او اجتماعي
تاريخ سره کومه مستقيمه او
ضروري رابطه نه لري

په دې صورت سره ويلاي
شو چي يوازي تلفظي طرزونه
او شرايط لغـوي او سبکي
خصوصيات د پښتو ويونکو له

کلتور او ترقي سره مستقيمه
رابطه لري . او په دې ټولو شانګو

کښې منطقوي او قبیلوي لهجې
هم اوی تاثیر اری مګر بدې
خبره نه ده چې موازي د رسم الخط
مسئله بربېږي لکه چې ښاغلی

«جنتي» بخپله مقاله کې
ولیکل چې د [زېرې] د ورځ-
پاڼې په ۲٤٦ ګڼه کې خپره
شوېده .

راځو چې د کلتور د لغت له
معنی څخه شروع وکړو .
تر او شیانو او کامیابیو ته چې د
تولنې د معارف، تعلیم، پوهې او

علم، هنر او آرټ او د روحي
او معنوي ژوند په اوږو میدانو
کې موجود دي په ګډه او عمومي
ډول سره کلتور وائي .

ددې دپاره چې بدې تر او د ګړو
کې په ورو ستنیو کلو کې د پښتو
د استعمال او استفادې زیا-
تېدو لکې پراخوالي او توسعه

وښیوه هیڅ اوږده او مفصل دلایل
ته دې په کار ځکه چې دا یو څې
ښکاره خبره ده .
آیا بدې نسبت تول ضروري

اقدامات عملي شوېدي ؟
آیا د پښتو د استفادې او د

استعمال سره به دې کلونو کې
د کلتور د پرمختګ له سطحې

سره یو ره مطابقت اري او که نه ؟
د کابل د پوهنتون د ساینس

فاکولته تر نظر لاندې ته نیسم
مګر داد بیانو په فاکولته کښې

د پر کنفرانسونه او درسونه
په پښتو اوروالي کېږي ؟

آیا به [پوهنې ننداري] کښې
په پښتو باندې درامې ښودلې

کېږي ؟ [ او یا فقط تر اوسه
پورې «تماشاهای دانش» ورته

ویلای شو ؟ ]
نوری د پرې پوښتنې نه کوم

ځکه چې بخپله ورته جواب
ویلای شم....

له معنی څخه د شکل باته کېده
یو دیالیکتیکي قانون دی

مګر د اجتماع وظیفه ئې داده
چې هغو ته ضرور او لازم مطابقت

پیدا کړي شي .
داد ژبې او کلتور د ګډو تعلقاتو

لومړی نقطه ده .
اوس نو د هغو امکاناتو سره سم

چې د مقالې چوکاټ ئې موږ ته
راکوي په لنډ ډول د وهمه
مسئله څېړو یعنې د ژبې او برخو
او د ملي کلتور د مشخصو

خصوصیاتو منطقي رابطه ګورو
داخبره ډېره مشکله ده او
اسا نه نه ده نو ځکه بوازې ئې
دحل کولو ځینې لارې ښیو .

تر تولو اومړی د پښتو د ادبي
تلفظ پر فورم او سیستم بحث
کوو چې ژبپوهنه کښې هم
orphoepia ورته وائي

دلته بدې ور څو شیو کې او په
آینده کې هم د لهجو خصوصیات
اغیزه کوی .
آمابدې ځای کې هم دهیواد د

کلتور ترقي، د تلفظ له ترتیب
[ او که ر ښتیا ووایو د تلفظ له
بې ترتیبۍ سره! ] جنجالي
اختلافات پیدا کوي.

تلفظ پېژندنې او اورفوپیا
[orphoepia] یو قدیم

علم او پوهنه ده اولا په ډېر رو
پخوانیو پېړیو کې له نطاق او

شاعر څخه غوښتل کېدل چې د
خبرو او شعر کولو د مجلس په مخکې

د وینا یا شعر ویلو په ترڅ کې دښه آواز او د قرائت او لوستلو ټاکلي شرائط او قواعد بشپړ او پوره کاندي دادي اوس چې علم، پوهه، تخنیك او کلتور پخپله ترقۍ کښې دې سطحې ته رسېدلی دی چې د راډیو په ذریعه یو نطاق د لکو او کسانو اوریدونکو سره خبرې کوي نو هیڅ څوك له دغه څخه هیڅ کله د کابل په راډیو کې دغسې قواعد او شرائط نه غواړي او له دې سببه هر یو ئې خپل ځان ته ښېخرون [Cicero] په سترګه ګوري او خبرې ئې اسماني غوندې څرګندېږي . زه یوازې دهغو نطاقانو په باب خبرې کوم چې نن په راډیو کې کار کوي او هلته شپه او ورځ نطقونه اوروي نو ځکه دسم او ښه تلفظ د خبرو او عمومي کولو مسئولیت د دغو پر اوږو پروت دی. دا یوه لویه ملي وظیفه ده او هر څوك چې دی د پروا نیست، ورته نشي ویلای. ددې وظیفې د پوره کولو دپاره

مخصوص ترتیبات او ځینې مشقونه ضرور او په کار دي له دغو څخه باید شروع شي نور نو ورپسې ښائي چې د پښتو سبقونو او درسونو په وخت د ښه او سم لفظ تمرینونه ترتیب او بیا ولوستل شي البته ددې دپاره لازمه ده چې د پښتو پوهان او لیکوال دې د ادبي پښتو ښه سم او روان تلفظ قواعد غوره او راټول کړي. د ډېرو محاورو او لهجو موجودیت د ادبي ژبې د ترقۍ دپاره هیڅ موانع نه شي پیدا کولای او نه ئې پیدا کوي. د لغاتو په مسئله کې په پښتو کې د خارجي داخل شوو کلماتو استعمال اوس زیات کتونه پیدا کوي . د پوهانو یوه ډله کښې چې باید په هره وسیله چې وي هر ډول کوښښونه او زیار ددې دپاره وکړي چې له پښتو څخه ټول خارجي لغات او اصطلاحات وباسي او ونې شړي او د هغو

پرځای پخپله د پښتو ارغونې او جوړ شوي لغات راوړي او یا ئې په نویو اختراع شویو کلماتو مبادله کړي او په دې واسطه سره خپله ژبه له عربي او اروپائي لغاتو څخه پاکه کړي او یوه سپېڅلې پښتو ژبه جوړه کړي د ملت او کلتور د ترقۍ دپاره داسې ډول مترقي نهضت قانوني بلل کېدای شي او ځانته تاریخي او اجتماعي سبب لري چې [Purism] نومیږي البته د خپل محدودیت او اختلافاتو له کبله په ځینو ځایو کې په ارتجاعي افکارو اخته کېدی شي . د پوهانو بله ډله هم شته چې دا عقیده او یقین لري چې ښائي څومره چې کېدای شي د پښتو دپاره خارجي لغات واخلو او د هغو په مرسته خپله ملي ژبه مترقي او غني کړو، په حقیقت کې ځینې خارجي لغات پښتو متمول کوي مګر په دې کې باید له ټاکلو حدودو څخه ونه وځو.

یوه بله داهم شته چې بدې مسئله کې د [عمومي انارشیزم] طرفداران ورته و بلاي شو. دوی گمان کوي چې ددې مسئلې د

حل کولو حق بیاني چې د واقعاتو دجریان اختیار نه وسپارل شي او یو حل بیا دې نه «پروانیست» رد بل شي.

له دې داو څخه کومه یوه ربښتیا وائي ؟
قول صحیح دی او هم قول غلط دی .

دا مسئله باید په دیالیکتیکي دول حل شي .
پښتو باید هرومرو یا که شي مگر دادځه دپاره لازمه ده چې

مثلاً د [تاریخ] کلمه د [نېټه لیك] په ترکیب تبدیل کړو او یا د [سیاست] دلغت په ځای [چارلیدنه] یا کومه بله کلمه

اختراع کړو؟ له بلې خوا څخه که یوه دېره ښه او روانه پښتو

کلمه لکه موتروان [سره له دې چې خالصه نه ده!] اړو تو

وائي څینې کسان به په پښتو کې [درایور] وائي .

د [انارشیزم] طرفداران د نظر له پوې نقطې څخه صحیح

دی البته یوهسان اولیکوال باید دژبې دترقۍ جریانات

وگوري او اساسي او اصلي قوانین ئې وپلټي. دوی نه بښائي

چې دچرت په تال ناست او یا په خیالي دنیا کې ژبني اختراعات

وکړي. بلکه په حقیقي اوعادي ژوند کې خپلې پلټنې وکړي

او په نورو او معاصرو زمانو کې تول چې واس جوړ کړیدی او

اوس ئې هم جوړوي غوره او انتخاب کړي . اما بدې کې د

ژبې دترقۍ کنترول او اداره داو کوم [انارشیزم] نشته .

دپښتو دسبك پېژندنې په باره کې هم باید یو څه کلمې ووایو

زما په نظر کې هغه فوري او ضروري اقدامات غواړي.

ترټولو دمخه باید دسبك دلفظ صحیحه او رښتینې معنی

وڅېړو، تراوسه پورې له یوې خوا څخه سبك ادبي، نظمي

طرز ته وائي مثلاً : خراساني سبك، عراقي سبك، هندي سبك او داسې نور او له بلې خوا څخه داسې الفاظ موجود دي لکه:

کلاسیکي سبك ، دسنتیمنتالېزم سبك، د رومانېزم سبك، د ریالېزم سبك، نوی سبك او نور مگر که ددې لفظ اومري

معنی دادبي نظم طرزوي نو بله معنی ئې په ادبیاتو او هنر کښې خلاقتي نهضتونه او همدغه رنگه ادبي او هنري میتودونه

او وسایل دي .
په حقیقت کښې اوس د عمومي ژبپوهنې د نظر له نقطې څخه موږ باید سبك داجتماعي

وظایفو دپاره د عمومي ملي ژبې داستعمال ترتیب او طریق و بولو او داسې گوته باید په اجتماعي ژوندون کښې دخپل

رول او اهمیت سره سم تقسیم او وېشل کېداي شي .

دټولنې دترقۍ دعمومي ضرورتو او احتیاجاتو سره سم دانسانانو

دکار په مختلفو څانگو کښې دژبې د استعمال او استفادې

لازم ترتیبونه او طریقې جوړې
او قابلې کېږي لکه: د
معاصر نظم ادبي سبک، د معاصر
نثر ادبي سبک، د معاصر ژور-
نالېزم ادبي سبک او داسې
نور. اوس هم هرچا ته ښکاره
معلومه ده چې مثلاً سرمقاله
او راډیوئي درامه هره یوه ځان
ته بېل خپل مخصوص سبک
لري. پرته له داسې عمومي
ادبي او احتیاجي سبکونو
څخه ښائي چې یو شمېر داخلي
او طرزي سبکونه هم جوړ
شي مثلاً د ژورنالېزم په عمومي
ادبي سبک کښې دې د سرمقالو
سبک د خبرونو سبک د سیاسي
بحثونو سبک او نور هم ومنل شي.

البته هر لیکوونکی به په دې
سبکونو کښې یو څه خپل
شخصي انفرادي او نوي خصو-
صیات ننه باسي مګر په خپلو
عمومي خاصیتونو کښې به هغه
سبکونه خپل شباهت او ګډ
عمومیت به ژوند او استعمال
کښې وساتلی شي او په دې
دول سره به د ادبي ژبې قوت
او قدرت مترقي او ډېر شي.

که رشتیا درته ووایم نو اوس
هیڅوک پښتو ته ورومته پاته
او یا خواره ژبه نه شي ویلای
غربي ئي شاعرانه او بېوزلیتوب
ئي سیاسي معنی لري.
اما له ډېرو نورو ژبو سره ئي
او مړنی فرق دادی چې په پښتو
کښې هم بې ترتیبه شته او د
ژبې د استعمال لازم دېسپلین
نشته، په هغه کښې هم د ژبې
خیالي آزادي شته او پوره
حقیقي آزادي لاتراوسه هم
نشته آیا له دې جهته هم پښتو
د ملي کلتور خصوصیات نه
منعکس کوي؟
ممکنه ده چې پر ځینو مسایلو
باندې زما شخصي نظرئي
انفرادي او غلطي وي. په دې
موقع کښې به هم بحث ته دوام
ور کړو.

اوس نو ستاسې د توجه او د وقت
څخه ډېر تشکر کوم.

په احترام.
د زېړي له اخبار څخه اخیستنه

## «د فکر پلوشې»

دغه نور، نورنکي چې د کتاب
د پاڼو پر مخ باندې نیت او پرک
شوي دي دا انساني فکر و هینداره
ده چې په ملیونو خلک د هغه له
ویلو څخه ګټه اخلي [پترارک]

هره ورځ چې تېرېږي، یو یو پل
و قبر ته نژدې کېږو. [....]

........................................

څوک چې له علم او معرفت سره
سر او کار، نه لري له لذت څخه
ئې بې خبره دي. [....]

آه! کشکي یو هیڅ دای چې څه
رنګه ژوندو کړم. یا څوک مې
پیدا کړی وای چې د ژوند
مطالعې او ورزش لارې ئې را
ښودلې وای. [تئودور پارکر]

........................................

بې کتاب اطاق د بې روحه
بدن په شان دی. [سیسرون]

د [ زبدة الصحائف ] له عربی کتابه څخه

د شاغلی «نجیب» ترجمه

# د شعر پیدایښت او تطور

## په اروپا کی

وایی چی په هند کی یوه ډله وګړیوه چی غیر له شعر و بلو څخه ئي بل ډډ نه درلوده نل په ئي دیبسو په امید سره د

خلکو مدحي او بېځایه توصیفونه کول ډله دا ډله د [سشارون] په نامه سره یادېدله بیا دې د ندې ویوي بلي طایفې ته چی [بهات]

نومېدله انتقال پیدا کړ د قدیمو اساطیرو په استناد سره ویلای شو چی د غو طائفو ځینې مذهبی نشیدې د شهرت د زیاتوالي

په غرض سره یادولي که څه څیر شو شعر یو فطرتی او ملکوتی الهام دی چی د مقدسو کتابو منظوم والی ئي د نبوت قوی

دلیل بلل کېږی او پدې کی داحکمت مضمر دی چی شعری

موعظې نسبت و نثری موعظو ته ډېر اثر اچونکی دی برته له دې که موږ وغواړو چی د یوه

قوم و روحی نمایلاتو ته وارد شو نو باید تر هرڅه اومړی د دوی شعری اثرونه او ادبی ذوقي سره وپلټو ولی چی د هر

اقلیم د آب و هوا تاثیر و شعری ملکې ته بېل بېل رنګونه ورکوی دایماً د تاوده ملك د خلکو اشعار د عافیت پسندی روح

لری او د ساړه ملك خلک بیا حماسی او احساسات پاخوونکی اشعار خوښوی ادبی مدققین وایی د شعر تعمیم اومړی وار

په یونان کی [هیسنودو] نومی وکړ دی شاعر د قبل المیلاد په لسمه پېړی کی ژوند کاوه مګر حال دا چی د قبل المیلاد

په نهمه پېړی کی د اومیرس شعری پارچو ډېر شهرت او

مقبولیت درلودی چی مطالب ئي د عباسی خلفاؤ په زمانه کی له یونانی ژبی څخه په عربی

ژبه ترجمه شوه دا شاعر سره له دې نو په خورا مقتدر شاعرو چی قصیدې ئي د عام مقبولیت له حیثه څخه د مقدونی سکندر

په عصر کی غوښتل شوی د سولون په عصر کی [طسیس] نومی ځینې الهامیه قصیدې ولیکلې د میلاد په اومړی پېړۍ

کی یو شاعر د [هنر] په نامه سره پیدا شو چی ځینې زراعتی پارچې ئي نظم کړی پسله دې څخه بیا ځینې نورو شاعرانو

لکه: ویندار، سمید، اتقریون په قصیدې لیکلو کی نبوغ پیدا کړ.

هغه سړی چی په روم کی ئي

شعری نبوغ درلودی [ارجیل] نومېدی دا شاعر د قبل المیلاد

په ۷۰ پېړی کی د منتو په ښاز کی زېږېدلی او بیائي د تحصیل په غرض سره د شاوخوا ونورو

ښاروته سفر کړی دی کله چې د روم په ښار کې له [اوغسطوس] نومي قیصر سره مخامخ شو د هغه په حضور کې د غرا قصیدو عرضولو په نتیجه کې د یوه لوړ مقام څښتن شو د مړګ نیټه ئې ۱۹م میلادي پیړۍ ګڼي د دومتیانوس نومي امپراطور په عصر کې استاسن نومي شاعر په شعري ډاګ کې پسل کښېښودی چې په تولو قصیدو کې ئې د برنیوس قصیده ډېر شهرت لري په سلمه میلادي پیړۍ کې مړ شو وایې د مسیحي دیانت په راتلو او خپرېدو سره ډېر نور نابغه شاعران و میدان ته راغلي دي چې مشهوره ئې دادي لکه: اوزان، برودنس بولاین، دونولیه، فلودیانوس، سزیانوس، ابولنیاریوس فرتونات او نور په دغو نوموړو شاعرانو کې غیر له فلوریانوس څخه نور ټوله د بت پرستۍ د عقیدې مخالف وه.

بسله دې مسودې څخه د روم امپراطوریت پسر ختمیږو او اوپه ځو سیمو پاندې وېشل شوی او د شعري مسابقو بازار تود شو بیدې دې وخت د شاعرانو قصیدې اکثره مدحیه وې مګر په یوناني شاعرانو کې هجو په قصیدو ډېر رواج درلودی بعضې مؤرخین وایي لکه څنګه چې د مسیحي دین په اثر سره د بت پرستۍ قواعد منهدم شوه همدغه شانته ادبي علومو انحطاط پیدا کړ او د شعرو شاعرۍ بازار سوړ شو او دینی مشاجرو رواج پیدا کړ همدغه وخت و چې فرغوریوس نومي شاعر و خپلو اشعارو ته دیني رنګ ورکړ.

د یوستنیانوس نومي قیصر په عصر کې مکدونیوس نومي شاعر ډېر مشهور و چې تل به ئې د نورو شاعرانو شعرونه یادوله او تفسیروله کله چې د اروپا وګړي د ادبي او فلسفي علومو له تحصیله څخه فارغ شوه نو بیدې حین کې صلیبي جنګونه ونښتله او اروپایان له شرقي ادب سره لږ ډېر اشنا شوه په فرانسه کې د بروني د ښار وګړي په هسپانیه کې د کتلونیا د ښار وګړي او په نیمسا کې د سوالي د ښار وګړي په ادبي علومو کې ډېر برمخ تللي وه مګر سره له دې هم د هغه وخت د وګړو په دماغو کې دا مفکوره راسخه وه چې د شعر ملکه په ایټالیا کې متمکنه ده د میلاد په شپاړسمه پیړۍ کې د ایټالوي ژبې اریوستو او طالو نومو شاعرانو په شعر ویلو کې طوفاني وکړی په هسپانیه کې په شاعرانو په شعر ویلو کې د خلکو د ذوقو ډېر مراعات کاوه د دوی شعري قصیدې به یا د جنګي پرواقعاتو بناوی او یا به ئې موضوع د سحر جادو بې حقیقته قصې وې د مقدسو کتابو مطالب به هم د شاعرانو له طرفه څخه په نظم سره لیکل کېدله بسله میلاده څخه په شپاړسم قرن کې اویس، وفیقا او کالدرون نومي شاعران پیدا شوه چې

د نور په ۱۳ مخ کې

(دیوان)

## ښاغلی

## لعل محمد

## «غریب»



ښاغلی لعل محمد [غریب] د حاجی دادمحمد زوی د حاجی احمدخان لمسی او د حاجی عبدل کړوسی په خټه اودین د کندهار دښار په دوهمه ناحیه کې په ۱۲۹۱ ش کال زیږېدلی دی .

په ۱۳۰۲ ش کال کې د کندهار دښار په لومړنی ښوونځی کې چې په هغه وخت کې ئې [ د ګنج مکتب ] بالاه شامل او تر پنځمې ټولګې پورې ئې اوست کړېدی کله چې په افغانستان کې سقوی

اړدوډ پېښ شو څرنګه چې دمملکت د ټر کارونه معطل پاته پرمخته ګ څخه پاته سول دغسی د ښوونځیو دروازې هم وتړل سوې خو ښاغلی غریب وائي چې : ما خپل درس نه دوام ورکړ او له خصوصی

استادانو څخه مې تحصیل وکی صرف 'نحو 'منطق تفاسیر ' احادیث ، فقه ' اخـلاق او عقائد مې واوستل چې دا دسبق او زده کړی سلسله مې تر ۱۳۱٤ کال پورې ورسېدل .

په دغه کال کې د کندهار د شالمار په ښوونځی کې (چې اوسنی مشرقی ښوونځی) دی د ښوونکی په توګه مقرر سوم . د ۱۳۱٤ کال تر آخره پورې دا وظیفه را د غاړی وه ، کله چې د ۱۳۱٥ کال

په پای کې ځینې ښوونکی د تدریس د اصول د زده کړی دپاره د کابل دارالمعلمین ته ولېږل سول د هغو ښوونکو په ټل کې زه هم ولاړم . د ۱۳۱٦ کال په پای کې بېرته کندهار ته راغلم

او د همدغه شالمار په ښوونځی کې بیا ښوونکی مقرر سوم . په ۱۳۱۷ ش کال د احمدشاهی ښوونځی سرښوونکی مقـرر سوم ' بـعدې تـرځ کې برسېره پردې وظیفه د هغی علاقې په وجه چې د

پښتو سره ئې لرم ' د ۱۳۸۱ کال په لومړی سر کی مې د کندهـار د ولایت د ټولو رسمی دائرو مامورینو ته د پښتو لوست کاوه چې پدې کې د عسکری فرقې صاحب منصبان هم شامل وه دا د

پښتو درس څلور کاله، او د سر معلمۍ وظيفې تر ۱۳۲۵ ش کال پورې دوام وکی .

په ۱۳۲۵ کال د کندهار کی د پوهنې د رياست د مفتش په صفت مقرر سوم چې دا وظيفه تر ۱۳۲۹

کال پورې را دغاړی وه . پدغه کال د ميرويس بابا د ليسې د سرښوونکی په حيث تبديل او تر ۱۳۳٤

کال پورې ئې چې معلمی هم ورسره وه دې کار ته مې اوږه ور کړی وه، د ۱۳۳٤ کال په پای کی

د پوهنې د وزارت په خوښه و مطبوعاتو ته راغلم او مړی د ګرشك د [ نيمروز ] د جريدې د مسئول

مدير په صفت چې اوس د [ هلمند ] په نامه اوښتې دی مقرر سوم کله چې د جريدې او مطبوعاتو

مدير بقو ته سره يو ځای شول نو د ګرشك د مطبوعاتو د مرستيال په توګه مې په کار پيل وکړ چې

تر ۱۳۳۷ کال پورې هورې وم . پدغه کال د کندهار د دولتي مطبعې په مديريت را تبديل

سوم چې اوس هم دلته مصروف يم .

نو ر نو ښاغلی غريب پر مسلمانی تينګ او له بدو څخه بېزاره سړی دی .

د خلکو سره ښه رويه او ښه سلوك ئې ډېر وګړی

ستائي، له دې کله د مخلص څخه چې څر ګندېږي غريبانه ژوند ئې خوښ دی علاوه تر خپل

کفاف د نورو خبرو سره علاقه نه سائي . بدې کار اوس هم خوښ دی چې شاګردان واری او ښوونکی

وی، کوم د فارغت وخت چې ورمېسره سی د يوه کتاب په کتلو ئې تېروی .

د ښاغلی غريب اثار او اشعار د کندهار، هلمند او په ځينو نورو جرائدو کی خپاره سوی دی .

ځينې کتور موضوعات او رسالې ئې هم ترجمه کړی دی چې [ فکر ][ علم النفس ته يوه کتنه ]

[ جوهر او عرض ][ عصبی نظام ][ د عروضو علم ][ د منطق ځينې اصطلاحات ][ علت و معلول ] ئې

عنوانونه دی او دا اثار ئې شل کاله پخوا په طلوع افغان کی هم خپاره سوی دی . د وی د خپلو

اشعارو مجموعه اوس د يوه ديوان په شکل سره راټوله کړې ده، خو چلا چاپ سوی نه ده دا ئې د کلام

نمونې دی :

## اورېځ

زه د سپند، هو کي هغه لوی سپند راورې په چې

پرتوله ئې ئې راچاپېر سوی دی او د رحمت توم

پر يادېږی .

کائنات زما سره مينه لری او د لوبه خدايه مې

په دعا ؤ غواړی .

د فياضی غوره نمونه او د نثاری لوړ ريه

ښوونکې يمه .

بلا سخاوت کی مې سارې نه سی موندلای .

د شاعرانو، فاضلانو د مجلس مالګه او د دوی د

خولو ورد يمه .

نك سپين رنګ لکه: شيدې اوورن، خوابا کی

بې غشه زده ښښتن راکړی دی .

له او ښکو جوړه سوې يمه .

لوی ښښتن سليمانی غونډی تخت راکړی دی

چې نن په هوا کې ګرځمه او د مهربانۍ مور په څېر
پر کائناتو کړېږمه .
سیوری پر کومه .
پر زهیرو زړو، ترپدلو هدیرو، وچو دښتو، تو دې

تو دې او ښکې توبومه او په خپلو اوښکو ئې تږي
زړونه ور مینځمه او د واورې پنبه پر بڼو کومه.
زما تر لمه سپینو مرغلرو څڅېدک دي چې هره یوه
ئې په یوه سره بنګوه ارزي .

هر کله چې د ښکي ګلونو ژبړي او وچې شوانې
لغړي وني، د بوزلو اسکېرلو او موښتانو وازی

خولې وربښمه .....
تو د زړه له جوشه مې تر خوله سرې سرې لمبې

ووزي، ځان تنګوم او دغه مرغلرې پر توی کم
لمنې ئې ورډکې کم، خپل زړه په سوړ کمه او
کټ، کټ ورته وخاندمه او تر څپره سمه .

## له خناسه واخله لاس

که دی زړه سو په وسواس
دا وسواس دی د خناس
له خناسه لیرې ګرځه
من الجنة والناس
له خناسه پسه نفرت شه
چې دده دی بد اساس
که دی عقل دی په سر کی
له خناسه واخله لاس
دی په تا باندی چېښی
په فریب د زهرو ناس
راسه ګوره مغرور مشه
د خناس پسه التماس
که عاقل ئې غلط نه شې
د خناس په کږو پاس
د غریب دغه وېل دی
د خناس دی بد اساس

## د شعر پیدایښت او ... د لسم مخ پاته برخه

ځینې نښیدی ئې د اخلاقی
تهذیب په ملحوظ سره والېکلې.
په دنمارک کې هم په دغه وخت
کې مقتدر و شاعرانو وجود

در اودی وا یې ښځو او نرانو
باندې په کډه سره د ژمي په شپو
کې له ساز سره ځینې ادبی
پارچې وېلې په سلاو، روم او
صقالیه کې بیا پرته له تاریخه
څخه ښځو هم د خپل کور

امور په نظم سره لیکله
بطرس قیصر هم له شعر و شاعری
سره ډېر مینه در لوده ددې
قیصر خور پوه تیاتری قصه نظم

کړې وه. چې د شکسپیر له
نظمو سره ئې تام مشابهت
در لودی .
انګلیسی شکسپیر هم پو له
اوبو شاعرانو څخه و چې پسله
ده څخه درایدن او پوپ نومی

شاعران و میدان ته راوو تله .
په دې وخت کې په فرانسه کې

او کتاویان شاعر داو میروس
شاعر قصیدې په فرانسوی ژبه
سره نظم کړې وېلون شاعر هم
د موضوع حکایتو په لیکلو

کې لاس در لودی د
څور السم لوئی په دربار کې
بیار ابین، او کومه نومی
شاعران د رسوخ او اعتبار
ارونکی وه ،

## د ادب ګلونه

ښاغلی «زمریالی»

# زه
# او د کلي خان

یوه ورځ وه دروازه چا ټکوله
لکه داچې دروازه ئې ماتوله
په ډېر زور او سمدلاسې خربوله
یاچې سرای ته ئې نخره راجوړوله
ما هلک ته وې ژر ورشه په تلوار
چې دا څه دی ناتار

هلك ورغی په ځغاسته و بېرته
پهدې خيال چې ناري کړم وتو کړته
ماورناخت کړه ځان مې ورساوه سپرته
چې ځانونه کړو تيار ناڅاپي شرنه
هلك راغی زغ ئې وکړ چې کرار
راغلی خان رویدار

ما سېر وغورځاوه وونم د باندې
زه حيران سوم چې داولې داسې کاندې
چې ولاړ دی خان د کلي وابي ساندې
کم يو غم دی که دنيا سوه لاندې باندې
ماوې څه وائې په څه نارو نار
تاو بېږی لکه مار

خان وې زوی مې ئې مکتب ته دی بېولی
په مدير دمعارف ئې نه منلی
نغواني يم اوس تا له راغلی
په مرګ خوښ يم خو داغم نه سم ګاللی
زوی مې ځنې خلاص کړه د ډېر یمه ناچار
ملك دی خبردار

زه د کلي خان یم مځکه مې ده ډېره     هم باغونه او دنیا ده تر حد تېره
باغوانان او بزگران مې دي بې شمېره     مکتب څه کوم بردې ژوندون بر سېره

بلار نیکه مې تللی تېر وو بردې لار
زه نه غواړم دا کار

په مکتب کې خو تاریخ جغرافیه ده     چې ئې اول مساحت او هندسه ده
نه مشهوره کتابونه، نه منیه ده     نه ابداغ د پنج کتاب او نه تحفه ده

د مکتب او مکتبي څخه یم بېزار
خوار یم زمیندار

هاوې خانه! زه حیران یم ستا گفتار نه     ډېر افسوس دی ستا و بڼا او ستا افکار نه
ستا خبرې توله ورته دي بادسار نه     بردې کای دی حیرانی ده هوښیار نه

خپل بردې به پرږدې به کوکار
چې داروي ستا گفتار

که د خدای او د رسول په قول خبر وای     نه د جهل پر خره به سپور نه به ابتر وای
لکه نور عالم به ستا علم رهبر وای     نه د دین نه د دنیا به بې خبر وای

هر یو نه بې محاسته مه نیسه پادار
وطن نه بزه گار

نه دي چرت سته د وطن او نه د کور هم     نه پوهېږې چې وطن دی لکه مور هم
دغران بر ځای دي نسته پېټ بېغور هم     د یتیم څخه کمیس کاږې په زور هم

نه دي ور کړه نه یا لنه سته د خوار
رحم نې په ستار

نه دي زوی لېږې مکتب ته نه ملا ته     ناوزلی دی لوی کړی دي وغلا ته
په کوڅه کې وي ولاړ دواړي هرچا ته     مور او خور دي داسې کړم وایم وتا ته

چې نه مرسې دی کوي چرس او قمار
چا بداد کړې تار په تار

زوی دي ورک کړ نیمه شپه وي په کوڅو کې     یا کچې کړی د څوانانو په کوڅو کې
یا دي گرزي د چرسیانو په نکیو کې     نه نوکېدنې ددې زوی پاصفتو کې

دینداره نه ئې ځانته تراشي اعتبار
چې تول کړي څه مردار

چې دي ځوان سي کرك باز... سي          یا... کوي مین په سروز او ساز سي
هم سربېره پر دغو دي قمار باز سي          په آخر کې چې ایچك سي دو په باز سي
د وطن او د ملت وي په اضرار
لوي غل سي داړه مار

خان و بل چې په مکتب کې بې دینې ده          هم اغوستي دوي خولۍ او دریشي ده
موږ ته ښه د خپل نیکه مسلماني ده          هم سودته موخواري او بزګري ده
نه مکتب غواړم نه دا چې سم کاردار
که سړی سي بېدار

د مکتب کارونه واړه شیطاني دي          کم کارونې پر دین سم یا کتابي دي؟
بلکه وایم چې دا ټوله دنیائي دي          نه ئې ږېره نه پرتوګ نه نسواري دي
لنډ پرتونه دوي څکري سګرټ سیګار
امسان د کره کار

ماوې خانه نه غوږ کېښږده زما بیان ته          اوس به ووزو درموږه لږ عیان ته
ګوندې پوه سې لږ څه و کوري جهان ته          یا د جهل نه مخ راستون کړي و قرآن ته
څنګه نه کړي داسې فکري هیڅ هوښیار
د اولاد سره غمخوار

د مکتب د بې دینې دي چا ویلي؟          که په خپلو سترګو نادي دوي لیدلي؟
په مکتب کې خو د دین ګلان کرلي          چې مسلم نه بې دین وایي دي رټلي
په خولې باندې څوك نه سي ګناهګار
ملت دي کې دا عذار

دا کالي چې موږ اغوستي د سپین سان دي          یا ترلي مو بګړي لکه کډان دي
پرتوګ نه موچې ځوړند په ډېر شان دي          نه جامې د پیغمبر نې د زمان دي
نه خوسته په دریشي د دین څه دار
نه په د دین وي په دستار

په کالو کې خومطلب ستر عورت دی — معتبر د زماني دود او خصلت دی
په رقم کې ئې حدیث نه کم آیت دی — نه کیږي پر نو ک واجب او نه سنت دی

نه دی منع د ریښی خولۍ شلوار
هرچا ته دی اختیار

په مکتب کې لمړی شرط ددین او ستل دی — پس له هغه بیا د نور علوم کتل دی
د تاریخ جغرافیې کتب ویل دی — زموږ په دین کې ئې روا ښه زده کول دی

اصحا بان ددې علومو طلبګار
تل دوی وو بې زیار

د اسلام په اومړی سر کې مدرسې وې — هم او ستل د مساحت هم هندسې وې
هم تاریخ جغرافیه هم فلسفې وې — هم حکمت او هم نجوم نورې قصې وې

داویل دی ددښمن لعین غدار
چې نه شي کمالدار

دا علوم خو را ایستلی عربانو — بې تللی هم زده کړی اصحابانو
دا علوم خو دانائې ده ای خانانو — خلك ولاړ ناسی پاته بې بختانو

ناپوهۍ مو بربادی ده خبردار
ځانو نه کړیء بیدار

خیله زیره که خرئې څوك خو ګناه ده — کې روا بولی خو دائې لاخطا ده
مګر دونه رواج سوې برملا ده — چې شیخیانو هم خربلې په صحرا ده

په مکتب پوازی مه زده نه دا بار
هر څوك په ګرفتار

هر حاکم چې بوه په دین او خپل ایمان دی — د رشوت او نارو اخخه په امان دی
هم په مینه دوطن او باوجدان دی — په خدمت کې دملت تل سرګردان دی

نه رشوت اخلی نه کړی دچا آزار
دورور وی غمګسار

که رشوت اخلی خاین دملك ملت دی — هم بیعلمه او جاهل هم په لعنت دی
هم ګناه ده زما او ستا هم مو ملت دی — چې ورو ورانه ی کړو سوفات بیا نو رشوت دی

که موږ ورنه کړو ودمه بدي زار
دوی نه غواړي دینار

په ټبر کې که بو بد سی با بې دینه — اول ټبر هغه سی هیڅوك نه شمېرینه
په مکتب کې رشوت نسته زماشیرینه — دا کاروته جاهلان دي چې ئې کړینه
مکتبي نه خیانت دی مرګ نیار
ګڼي ئې ځانته عار

لنډه داچې تاته وایم ای خانه! — دا خبرې د دښمن دي واوره مانه
د مکتب غیبت کوي تاته بې شانه — چې جاهل اوسي دي ګټه وکړي تاته
که عالم سي کښې به نکړي ستامهار
په ځان به سي بووار

د مکتب او مدرسې خو یو مطلب دی — هم په اصل او لغت کې د عرب دی
ځای داوسټو د لیکلو د ادب دی — د جاهلو د تابوه د بوه سبب دی
تانه ولی بدینکاریږي علم الدار
نه مکړه تري انکار

علم بوه ده بل شی نه دی ځان خبر کړه — که د بن سانې بر دنیا باندې نظر کړه
ګوره زماخبر باریکه ده هنر کړه — د بن دي ولاړ نشي ځان پوه بدې خطر کړه
برابر نه دي سوقي او هاشیندار
شه پوه به دې اسرار

ن نه وګوره دنیاته څه احوال دي — ستا په سر کې لا هغه زوړ خوب او خیال دي
دژوندون سبب دی ن علم او کمال دی — که کمال نه وي ژوندون دی د پر محال دی
بندلا نه اخلې کوي نه ګرهار
له علمه کوي فرار

د دنیا طیاري ګوره او چازونه — هم ټانګونه هاشیندار هم او بتلونه
دوب ما کوئی لابلا دي اوی توپونه — چې ئې مخه سی اوار کړي دوی اوی غرونه
که دي پښې وي غزولي خوږي تاغار
ناموس در څخه ولاړ

په دنیا کې اوس ژوندون په هر قوت دی — چې قوت پیدا کوي کمال ثروت دی
ددې دواړو اساس تینګ پر معرفت دی — معرفت چې چا نه وي جهالت دی

وعرفان نه مکتب کور دی او دیار
خپل ځان کړه نه هوښیار

اوس به بله قصة ووایم وتاسانه — په دنیا کې ستا ژوندون زهر چا پانه
که نه پښتواني که بد واني ومانه — نه خوا ای د خپل کفن ئې و بل چانه

کله موړ ئې کله وږی او نهار
ستا خوراک دی سپور جوار

بله داچې تاستاسي خپل وطن دی — هم د بلار نیکه دریانه سور کفن دی
که ځه غم دی دوطن ستا په ګردن دی — که زهیر دی پروطن باندی ستا ئن دی

مګر مېږ چو کې د چاده ستا دی سپار
لا خوری پرسر بېزار

دا ذلت او بې بختی چې در پېښېږی — ستا په ګټه باندی بل دی چې خوربېږی
حق دی اخلی هم برنا باندی سپريږی — په علمی ده چې دی ځان نه بلا کېږی

که دی علم وای خو نه به وای آبدار
په ټولو کی نامدار

ځانه! مانه قافیه سوه ډېره تنګه — اوس راځه چې دواړه لاس واخلو له جنګه
زه پښتون یم داوبل مې دی له ننګه — زما مطلب چې نه پیدا کړې ځانته بنګه

زهر بالی یم نانه غوادم په بار بار
عزت او اقتدار

د پر و بل د قرآن ښه دی اوس به بس کړم — که دا ناسی ټول پښتون تو به هوس کړم
هم به هلته پیانو نه خپل په وس کړم — چې د علم د کاروان پښتو جرس کړم

دا خو زما د زړه ارمان دی بېشماره
کې و کی مددګار

بناغلی عبدالله [لالی]
د ادبیاتو لیسانسه

ترجمه او لیکنه

# وروستی تحول

د مخه تر دې چې ماشین منځ ته راشي او د انسانانو په ژوند کې وروستی تحول پېښ کړي، د ارغونې تریه ټول مدنیتونه اساساً یو له بله سره ورته او مشابه وو. په هر ځای کې د ژوند عمومي رنگ او شکل زراعتي او ټول صنایع لاسي وه. د باد او اوبو قوې به یو څو ماخته کارونو کې لکه د جرندو اوړه کول او د اوبو پورته کول د آبیارۍ لپاره په کار اچول شوې وې، او هیڅ کار د ماشین په واسطه نه اجرا کېدی.

د تریه اقتصاد د انسانانو د غړو په قوو او یو لږ څه د حیواناتو په مرستې (غوییانو، یوې، کوله او خرو باروړنه وړل) پورې مربوط وو. همدارنگه د تریه صنعت هم د انسانانو د لاسونو په مهارت پورې چې وارکیږو او څخو ته به یې مطلوب شکل ورکاوه تړلی و.

هر تمدن د خپلې داچې یې بر لار او لیکه پر مخ ولاړ او ترقي یې وکړه او د صنایعو په ځینو څانگو کې یې فوق العاده برتري او مخکښي والی پیدا کړ. د مثال په توگه چینایانو د چیني لوښو په جوړولو کې پرمختگ وکړ چې حتی موږ خپل بلوري لوښي (چیني) بولو چې د چین ته منسوب دي. اسلامي وگړو بیا په اوبدلو کې خپل مهارت او مخکښیتوب ښکاره کړ. که څه هم هر تمدن ځانته جلا خصوصیات درلودل او په اوږدو نظر له نورو مدنیتونو څخه کورت بېل ایښېدې لېکن د شیانو د جوړولو په ټولو کې لکه کلالي او اوبدل، د پېړه ارغونې او مشترکه وه او ټول وگړو به مختلفو درجو مهارت سره استعمالول. تکنیکونه په تصادفي ډول پرمخ ولاړ نه داچې د علمي تجربو او ازموینو په واسطه. د کارونو د اجرا کولو لارې او طریقې اکثره د کوډو او جادوگرۍ برخه درلوده او په سحرآمیزه رسومانو سره اجرا کېدل. د هغو اسبابو او لوازمو سره چې د یوې بریالۍ تجربې او کار لپاره ضروري و ځینې نور اسباب او نارشیان هم اضافه کېدل چې د اصلي کار او تجربې سره به یې هیڅ اړه نه درلوده. د مثال په توگه د بنې شاگرد ته ښوول شوی و چې کوره باید څنگه جوړه کړي معدني مواد په څه ډول پکښې واچوي او اور ورته کړي، او همدارنگه ده ته ښوول شوی و چې د کار د پیل په وخت کې باید مخصوصې جامې واغوندي او خیرات وکړي که نه کار به یې په ښه ډول سرته ونه رسیږي او بریالۍ نتیجه به ورنه کړي. د اجتماعي او اقتصادي تشکیلاتو

مهم دول په ارغونیو وختو کې دښت میندو ؤ. د تولي ارغوني تریخ د مدنیتونو په ابتدا کې کښتګرو مخکې کړلې او ښځو ئې د کور کارونه او د کوچنیانو روزنه په غاړه اخیستې وه، او دوز ګاري په وخت کې ئې یو څه نو کران اودل. په ښار او کلي دوادو کې د کار وخت د لمر څرک څخه شروع کیدی او د لمر لویدو سره ختمیدی. هغه ډیر لږ اضافه محصولات چې د کښتګرو او کاسبانو له ډیر زیار او زحمت څخه حاصلیدل، ملایان، نجیبان او حاکمه هیئت چې د ښوونې، مذهبي او اداري چارې ئې په غاړه اخیستې وې حمایه کول او ساتل. په اول کې حاکمه هیئت د کښتګرو او کاسبانو په سعادت او نیکمرغۍ کې ډیره دلچسپي درلوده او عوامو به دوی ته د لارښوونکي او ساتندوی په سترګو کتل. لیکن وروروسته حاکمه هیئت له خپلو مسئولیتونو څخه غاړه

وغړوله او په خپلو چرچو اخته شول او له بلې خوا یو څو وچکالي او قحطي هم پیښې شوې چې وګړي ئې په خپلو ځانو پورې حیران کړل، او هغاؤ چې د دې دوارو طبقو په منځ کې وراني او ناراضاني پیدا شوې ځکه چې لارښوونکو ئې د پنه ژوند وسایل لکه څنګه چې نن موږ مجهز یو دوی نه شوای برابرولای. په هر صورت کښتګرو به ډیرې خوارې ایستلې او هر تمدن په زرګونو کلونو دوی په خپلو کارونو کې ناچاره قائم وساتل او نجیبانو او خانانو به خپلو کښتګرو ته مهلستیاری کولې او د دوی پر کښتونو به ګرځیدل او په یو څه به ئې خوشاله کول.
د دې ارغوني سیستم د نړیدو د دوو اساسي اختراع و په منځ ته راتلو سره شروع شو چې یو ئې علمي میتود او بل ئې د حرارت استعمال د قوې د منبع په حیث ؤ. دا دواړه اختراعوې په اروپا کې منځ ته راغلې ځکه

چې اروپا هغه زرخیزې وادۍ ګانې چې داوسې لوی لوی کلتورونو پښتونه دی نه درلودې ډیره لږ معلومه کیږي چې اروپا هغه تمدن چې پښت ئې یونانیانو ایښی ؤ پرمخ بوت او ترقي ئې ورته ورکړه.
یونانیان ډیر متجسس او کنجکاو وګړي ؤ. دوی د خپلې شاوخوا نړۍ د هر شي په باره کې لیدنې، کتنې او تحقیقات کړیدي، آثار ئې پر لیکلي دي، او له ځانه ئې پرې ایښي دي. تقریباً د هرې اوسنۍ علمي تیوري او نظریې ریښه د یوناني فیلسوفانو په ښوونو بحثونو او آثارو کې موندل کیدای شي. د ریاضي هغه سیستم چې یونانیانو پرمخ بوت د علمي تحقیق او پروهې د پیشرفت لپاره ډیر ګټور ؤ. په هر صورت، یونانیان پر خپلو کشفیانو او منطقي نظریاتو باندې ډیر معتمد او مغرور ؤ بیله دې چې هغوی د ازموینې او صحیح او غلط ئې ښکاره او

را برسېره کړي. حال دا چې د
علمي میتود جوهر او اصل دا دی
چې ساینسدان پر خپلو کتنو
او لیدنو باندې اعتماد نه کوي.

دی په هېڅ چې ده نه بالکل
ممکنه ده چې محسان نا پوه
و بولي، په نوره بیا هغه وخت
چې یوه مخصوصه نتیجه د ده له

نظریې سره موافقت وکړي.
ساینسدان ته واقعاً د اروش تر
تجربې تکنیک ډېر مهم دی.
یونانیان چې به کله یوې نتیجې

ته ورسېدل نو بیا به ئې توقف وکړ
او بیا به ئې و کار ته ادامه نه
ورکوله لېکن نننی ساینسدان
یوه تجربه بیا بیا اجرا کوي او

د هغې نتیجې په ډېر احتیاط
سره ثبتوي چې بیا وکړای شي
د نورو ساینسدانانو د تجربو له
نتیجو سره ئې پرتله کړي.

دی پوهېږي چې ماشین حسب-
الخواهش د انسان د فکر تر

اغېزې لاندې ته راځي، نو ځکه
ډېر میخانیکي کارونه اجرا

کوي چې وکړای شي له خپلو
کتنو څخه ښې نتیجې لاس ته

را ولي.
تر ده وروسته دستي په دستي یو
بل ساینسدان د ده تجربې
تکراروي او نوي ترتیبات نیسي

ښائي داسې نتیجه په لاس راوړي
چې له پخوانۍ نتیجې څخه توپیر
ولري، په هر صورت ساینسدان
خپل کار ته ادامه ورکوي او

هیڅکله ئې نه بس کوي بلکه
زیار کاږي چې د آینده کار د
اغاز لپاره زمینه برابره کړي.
د ارغوني یونانیانو د کارونو

او اوسني ساینس تر منځ قریباً
د ۲۰۰۰ کلونو په اندازه یوه
وقفه وه چې په دغه موده کې د
اروپائیانو دماغ د علمي میتود

د ښه راغلي لپاره یوه زوروره
آماده‌ګي نیوله. د ارغوني
یونانیانو د ځینو مستقیم مشا-
هدات او کلاسیکي تحقیقات

ورو ورو سقوط وکړ او په
منځنیو پېړیو کې هیڅ تحقیقات

او فیصلې په وجود رانغلې وګړي
او دوی فکرونه ټول د کلیسا

د نفوذ تر اغېزې لاندې وو پوله
مذهب څخه په نورو چارو کې

خبرې اترې منع وې. د رنسانس
او ریفارمیشن په منځ ته راتلو
سره د کلیسا قدرت و پښو شو
او مقتدري ئې ګاوې بیا په علمي

تحقیق او تجربو لاس پورې کړ
چې اوسني ساینس پرې ولاړ
دی.
نننی ساینس غالباً په لیونارد و-
ونسي سره چې له ۱۴۵۲ څخه
تر ۱۵۱۹ پورې ئې ژوند کاوه
شروع شوی دی. د بخار او مري
ماشین چې ماشیني دوره شروع

کوي تر ۱۷۶۵ پورې جوړ شوی
نه و. د ۳۰۰ کلونو په موده
کې یعنې د لیونارد و ونسي د
تجربو او بیا د بخار د ماشین تر

اختراع پورې ساینس ورو ورو
پرمختګ وکړ او تر یوې اوږدې
مودې پورې ئې پر ورځني ژوند
لږه اغېزه درلوده.

کښتګرانو په همغه پخوانۍ
طریقه کښت کاوه او کاسبانو

په همغه پخوانۍ طریقه کسب
کاوه. عوام چې به د ساینسدان
څخه کوم شی واورېدی هغه به
سحر او جادو ورته ایسېدی.

دغه وخت دارو پا او د کشفیاتو او سیاحت زمانه وه، کله چې د دوی کښتۍ ونوو ممالکو او ملکونو ته ورغلې، د دوی

تکنالوجي تر ډېره حده دارغوني نړۍ د مدنیتونو د تکنالوجۍ په شان وه. د دوی اوږده بحري سفرونه په غاړه واخیستل چې

د نوی نړۍ تهور سیمې، هغه چې په ډېر سختۍ سره د نوی نړۍ سواحلو ته ورسېدل او د خپلو زغرو، تورواو توپکونو

په ذریعه د نوی نړۍ پر خلکو باندې غالب شول او د هغو پر ترونو، سروزرو او جواهرو باندې یې لاس برشو. ډېر مهم

بدلون چې په دغه وخت کې په اروپا کې پېښ شو تکنالوجیکي نه بلکه اجتماعي ؤ. د نوی تجارت او نوو بازارونو

په منځ ته راتلو او د سروزرو په راتګ او جریان سره له امریکا

څخه و اروپا ته فیوډالي سیستم خپل مرګ واید او محوه شو.

خلکو له تجارت څخه ډېری پیسې په لاس راوړې او وګړي

و ښارونو ته راو کوچېدل او ښارونه له فقر څخه ډک شول او قدرت د سوداګرو اشرافو په لاس کښېوت.

دارغوني یونان اشرافو خپل کشفیات د عمل او استفادې په معرض کې نه ایښوول او خپل کشفیات به یې بېکاره بریښ-

ایښې ؤ اما دغه نوی ارستو-کراتان دې ته مایل ؤ چې علمي کشفیات هرچېرې چې د دوی ګټې او محصولات زیاتوي په

کار واچوي، څو په پای کې په اتلسمه پېړۍ کې دغه حالت واوښت او ساینس د اسارت ځنځیرونه وشلول او د خپل

آزاد تحقیق لاره یې پیدا کړه او نوی تحول یې په وجود راوړ.

د حرارت څخه د قوې د حاصلولو

د اختراع سره سم د بشر په تاریخ کې دریم تحول منځ ته

راغی. د دې اختراع لومړی اغېزه د قوې ګټور کول ؤ، په

تېره بیا په هغه ځای کې چې د سوځنګ مواد پیدا کېدل.

ماشیني آلاتو د ډېر مقدار فلزاتو او د ډېرو سکروتو ضرورت درلود ځکه یې نو پر فلزاتو او د ډېرو پر سکرو باندې نوی

ارزش کښېښود. ماشین د ډېر انقلابي پرمختګونه په وجود راوړل. ان موږ د خپل ژوند ټول کارونه د ماشین په واسطه

اجرا کوو، غواړو چې وبلو سیارې ته کښېنو شو، له مغارونه واورو بنګلو او آسمان خراشونه ځو، د حمورابي له قانون څخه

وان ورځی قانون ته راځو، هغه شمع او د سکرو اور چې د حمورابي په کور کې بل ؤ ان یې ځای برقي بخاریو او

برقي څراغونو نیولی دی. پخوانی خلکو د سکرو نو او د ځینو امراضو نوم لا نه ؤ اورېدلی او نوکرده د ناورو

مرضونو په سبب به ځلمیتوب کې لا د جهانه سره وداع کوله

او د نننۍ ډاکترانو او دواګانو په باره کې هیڅ معلومات نه درلود

د دوی قیر شوی سرکونه، پارکونه، ښکلي کورونه، پراخ ښارونه

اوتنظیفاتي تشکیلات ته دراودل
دوی به د ځینو خلکو و خبرو ته
که صحیح وي او که غلطي
غوږ نیولی وُ او سرونه به ئې
ور ته ښوروول پله دې چې دغوی
په خبرو کې فکر وکړي او د
هغوی صحیح او ناصحیح
معلومې کړي او اظهار نظر
وکړي.

د نیکمرغه نن دغو پخوانو
سوداګرانو، ښکاریانو، انجیبانو
او کارګرانو اجتماعي
تشکیلات ټول له منځه تللي
دي او روغ او ښه تشکیلات
ئې پر ځای منځ ته راغلي دي.
په دې نوو تحولاتو کې موږ
د پخوانیو مدنیتونو لار تعقیبوو
او د تکامل و خوا ته ځو. موږ
په ښو ماشینونو، ښو لوازمو
ښې روغتیا او ښو موفقیتونو
پسې هڅه کوو. زموږ د ژوند
سویه دومره لوړه تللې ده چې
پخوانیو خلکو په خوب کې هم
نه وه لیدلې. تکنالوجي له
پخوانه ډېر بدلون کړی دی.
د تکنالوجي د بدلون په واسطه
اجتماعي تحول منځ ته راځي
او اجتماعي تشکیلات او موسسات
نوی شکل غوره کوي. اجتماعي
علوم (اجتماعیات، اقتصاد
انتروپولوجي) هم ډېر انکشاف
کړی او د وهمي تصوري او
خیالي نظریو له کړیو څخه ئې
ځان خلاص کړی دی او د مثبتو
اصولو او قواعدو په اساس
حرکت کوي.

اجتماعیون پوهېږي چې بشري
ټولنې مستقبل معین او ټاکلی
نه دی. د تاریخ په اوږدو کې
یو شمېر مختلفي لارې شته چې
پر هغې باندې ټولنه تللای شي.
مدنیتونه متحول شیان دي چې
په دې تحول کې د تطابق
مختلف دورونه دي. انسانان
ترڅو او ژوند ډېر سخت سره او
تطابق کوونکي دي او کولای
شي چې په مختلفو اجتماعي
سیستمونو کې چې و دوی ته
خواړه، پوښاک او ځای برابر
کړي ژوند وکړي. لیکن
ځینې په ځینو سیستمونو کې
چې په هغو کې د فرد شخصیت
محترم وي، آزادي ولري او
خپل استعدادونه و کمال ته
ورسوي، او په هغو سیستمونو کې
او د زغ داري ډېر خوښ دي
اما ځینې ئې بیا په ځینو نورو
سیستمونو کې خوښ نه دي.
په هر صورت د نوي کشف په
ظهور سره یعنې دا چې د اتومي
انرژي څخه څرنګه کار واخیستل
شي د ډېر لوی تحول امکانات
په وجود راځي. په دې وخت
کې د دغه قوه سیاسي جنبه او د
خلکو اذهان ئې پرېشانه کړي
دي او داسې فکر کوي چې
جنګ د انسان یو طبیعي عمل دی
لیکن څرنګه چې و پښو دې قوي
خپل بداوو ران خاصیت ته تغییر
ور کړی دی او ثردي ده چې د
بشر په سعادت او نېکمرغي کې
استعمال شي او بیا دې ډول به
څلورم تحول د بشر په تاریخ
کې پېښ کړي. نو بیا دې اساس
موږ هم باید خپله لرغوني روبه او
فکرونه وکړو ... چې ښه ژوند
وکړو او ژوند پر ځان تریخ
نه کړو.

ښاغلی غلام غوث «رشاد»

# نومیالي پوهان

## البرت اینشټین

ونړیونه د پوهانو راځي اوځي چه وجود ئې د هیڅ اثر منشا نه وي او له ازله ښځه ئې څوك نه خبریږي حتی لوی

فاتحان او تاجداران کې هم چې د خپل ژوند په وخت کې ئې نړیوال ګین لاندې راوستلي ده او نړۍ ئې له خپلې اوازې

د که کړېده، لاکن هم اثر محدود او د دوی د ژوند په وخت پورې اړه لري، یا یو لږ وخت دوام کوي او ډېر ژر یا یو څه

وخت وروسته ئې نوم یا ئې کارونه د هیرې په ګرداب کې غوټه کیږي. حال دا چې د افلاطون، ګالیله، نیوټن او

داسې نورو نومونو تل د خلکو په زړو او دماغو کې وي او اثار

ئې د ژوند له صفحې څخه نه زائل کیږي.

البرت اینشټین په ۱۸۷۹ع کال کې د المان د [اولم] په ښار کې په یوه یهودي کورنۍ کې نړۍ ته راغلی او له وړو کتوب څخه ئې په نافذو او چاڼ ونکو سترګو کې فوق العاده هوښ او ذکاوت ښکاره کېدی.

دی په داسې ښیلوونو فکرونو لیرې او وزدو اندېښنو کې ډوب تللی چې کله کله به ښوونکې سرزنش کړ او کوزنه څخه به ئې

بلې خوده د نورو په خبرو او فکرو پسې سر نه ګرزاوه او کومه لار چې ئې په مخه اخستې وه هغه ئې پسې تعقیبول. یو واس کلنی

سوی نه و چې د پوهانو او فیلسوفانو اثرنې په ډېر غور سره کتل وعلومونه دده توجه ددې باعث سول چې د بلار د مخالفت او مقاومت

سره مخامخ سي خودده ټینګ عزم او اراده پر تولو موانعو بریالي سوه او هغه لار چې یوځلې ورته پرانستلې وه پررهي سو.

اجتماعي محیط او جاهلانه تعصبات هم دده مزاحم وه ځکه دی یهودي و نړۍ ته راغلی و او دی یهودي والي د پروخت ورته سر

دردي پیدا کړې وه او کله چې دی د معلمۍ درجې ته ورسېدی نو ئې له دې څخه امتناع و کړه چې یو نن یهودي دوړو کودروزنکی په عنوان غوره کړي.

ځوان البرت تردې هاند او کوښښ وروسته بریالی سو چې د سویس

د برن په ښار کې د امتیازاتو په اداره کې په کار پیل وکړي او ډودیه و موندې.

دغو مشکلاتو نه لیدلی بلل او له هر فرصت څخه به ئې چې په لاس به ئې راوړی د خپلو مطالعو د اداري دباره کار آخستی.

په ۱۹۰۵ع کال کې دده [د نسبیت خاصه نظریه] خپره سوه او تردې وروسته دده نوم په علمي مجلسو کې په احترام سره یادېدی او د پوهنځیو ورونه ئې پر مخ ور پرانستل سول.

[نور په ۲۷ مخ کې]

دښاغلی «غیور» ژباړه

# موریس میترلینگ

دغه نامتو فیلسوف په ۱۸۵٦ عیسوی کال کې زیږیدلی دی نوموړی فیلسوف ته د شلمې پیړی سقراط لقب ور کړه شوی دی ځکه چې ددهٔ افکار او دماغ او طبیعي نبوغ د سقراط له افکارو سره نژدې دی. د نوموړی دژوندپېره برخه په واشنګتن کې بای ته ورسېدهٔ اود ژوند په وروستیو مرحلو کې له مالیخولیا (اپو نقوب) سره مخامخ شو. دی په اصل او نژاد کې د بلژیك دی چې وروسته د امریکا خاوری ته ستون شو. موریس میترلینګ وروسته له هغه چې په فرانسه کې ئې خپل لومړنی او لوړ تحصیلات د حقوقو په څانګه کې سرته ورسول د [وکالات دعوی] په کسب اخته شو. نوموړی پهدې پېره لنډهٔ موده کې د بشری حقوقو د قوانینو په باب کې پوره معلومات او تجربه پیدا کړه او خپل د کتنو او څېړنو نتیجهٔ ئې پهعملی تو ګه سره د عمل ډګر ته وړاندی کړه. ده برسېره په فرانسوی ژبه په انګریزی، المانی یونانی، ایټالوی، لاتیني او یو شمېر نورو ژبو هم خبری اتری کولای شوای.

میترلینګ په لومړنیو وختو کې دځو وړ کوټو ناولونو او رسالو په لیکلو بیل وکړ مګروروسته په څېړنیا سره د لوېو فلسفی کتابو نو په لیکلو باندی شروع وکړه اود یوې لنډی مودې څخه وروسته د [عقل او سرنوشت] د کتاب په لیکلو باندی چې د منطق او فلسفې له نقطهٔ نظره ډېر اهمیت لري بیل وکړ، دده بل کتاب [بلوبره] یا [آبی‌ برنده] نومېدی چې په ټوله دنیا په تېره بیا په اروپا کې ددهٔ نوم او آوازه ئې پوره کړه.

موریس میترلینګ په ۱۸۹۵ کال کې د فرانسې د ښوونې او روزنې د اکادمۍ په غړیتوب ومنل شو اود نوموړی اکادمۍ د رئیس له خوا په ځو ځو ځله دتحسین او ستاینې وړ وګرځېد. برسېره پرهغه د انګلستان د پاچا پنځم ژرژ د ایټالیې د پاچا دریم امانوئیل اود بلژیك د پاچا لومړی البرت له خوا هم یو شمېر انعامونه ور کړل شوېدی.

میترلینګ د غرب په نړیـه کې یو پیاوړی فیلسوف تېر شوی دی اود هر ځای نر او ښځې لری او واړهٔ په نظر کې ځان ته احترام لري.

# د «البرت اینشټین» پاته برخه

دهغه او پراخه پسې د طبیعت په پټو د پوهیدلو دپاره مطالعه کول . دده [د نسبیت عامه نظریه] په ۱۹۱٦ کال کې خپره شوه او دده نوم ئې په نړیه کې خپور کړ . البرت روښانه لمر د علم او پوهې پر هسك ځلیدی .

په ۱۹۳۳ کال کې البرت اینشټین مجبور شو چې د المان خاوره پرېږدي او هالینډ ته پناه یوسي ځکه دهغه وخت د المان حکمران غوښتونکو او ظالمانو واکدارانو د یهودیانو دسته‌جمعي کشتارونه شروع کړي وه .

ده په هالینډ کې هم هغه آرامي چې غوښتله ئې ونه موندله او دهغه اوچین لار ئې بلامخ کې ونیول . له هغه ځای څخه فلسطین او اسپانیا ته ولاړ څو ئې دامریکا متحده ایالتو ته سفر وکړ . هلته دده ډېر احترام وشو او ده ته د کارو وسیلې ئې له هرې خوا څخه ورته برابرې کړې او د [پرینسټن] په پوهنتون کې په کار بوخت شو .

البرت اینشټین د اکسفورډ کمبرېج ، کلاسکو ، زوریخ مادرېد ، پاریس ، بوآینس آیرس ، روستوك ، بروکسل ژنیو ، منچسټر ، پرینسټن ، هارورډ او لندن د پوهنتونو افتخاري دکتوري درجې لاس ورودي دي . د زوریخ ، پراګ او کلرژو فرانس په پوهنتونو کې ئې استادي کړې د لندن کمبرېج ، اکسفورډ او د امریکا په ډېرو پوهنتونو کې ئې افاضه کړې په ۱۹۳۳ کال کې ئې د پروفیسر المریتس استادي پر غاړه درلوده او د ولهلم د قصر د فزیك د موسسې ریاست او د پاریس ، امسټردام ، کوپن‌هاګن د علومو په اکادمیو کې ئې غړیتوب درلود .

اینشټین یو نابغه پوه او یو صاحب نظر فیلسوف و او علمي او فلسفي جنبې ئې په خپلو تعلیماتو کې داسې سره ګډې کړې دي چې یو له بله ئې بېلول ډېر سخت دي .

ده مونږ د یوې نوې نړیه پامخ کې درولي و چې بنسټ ئې د ریاضي پر فورمولو ولاړ دی داسې نړیه چې درك او په پوهېدل ئې یوازې هغو کسانو څخه چې ډېره علمي مایه لري بل چاته میسر نه دی .

دا اوس یوه په اجتماعي ژوند کې او له اخلاقي حیثه څخه هم ډېر ښه دی چې سرمشق او نمونه وګرځول شي .

له ده څخه ډېر آثار پاته دي او ډېر کتابونه ئې لیکلي دي چې د بلې پټې نړیه ورونه ئې زموږ پر مخ پرانستلي دي او ده د کارو نتیجې یو ځلانده مثال دي چې د نورو پوهانو او عالمانو دپاره ئې بل کړي دي

[په ۲۸۹ مخ کې]

لیکونکی: عبدالباري «آشنا»

# نثر

که څه هم د نثر لغوي معنی پاشل دی مگر په اصطلاح کی هغه کلام ته وائی چی وزن او قافیه و نه لری یا په بل عبارت د نظم مقابل وی.

**د نثر قسمونه:** پخوانو پوهانو نثرونه په عمومی ډول دری ډوله و پشلی دی،

اول: هغه نثرونه دی چی په خبرو کی استعمالیږی او خلک ئې د یو او بل د پوهولو او راپوهولو دپاره وائی چی دې ډول ته محاورئی نثر ویل کیږی.

دوهم: هغه نثرونه دی چی عبارتونه ئې فصیح او اغیزه نا که وی او خطیبان ئې د خپلو مقاصدو دپاره ویږی ته وائی او جمعیت ته اوروی چی دې ډول ته خطابی نثر ویل کیږی.

دریم: هغه نثرونه دی چی د مختلفو مقاصدو د ښکاره کولو دپاره لیکل کیږی او دې د ډلې تحریری یا لیکنی نثر وائی.

دا دول نثرونه هم پر یو دوه ډوله راځی [مسجع او مرسل]:-

**مسجع:** هغه نثر ته ویل کیږی چی د یو لیکونکی ئې د جملو او اخر په یوه قافیه سره ختم کړی یعنی چی یوه جمله ئې د بلی جملی سره په قافیه کی برابره او مسجع وی. دا ډول نثرونه پخوا په عربی، فارسی او پښتو کی ډیر وه چی نیم منظوم نثرونه بلل کیږی.

**مرسل:** هغه نثر ته وائی چی د قافیې التزام پکښی نه وی شوی لکه دا او سنی نثرونه چی تر له لیکنی، خطابی او خبری په دغه ډول نثر سره کیږی. دا هغه ویش ؤ چی پخوانو پوهانو د نثر د تشخیص دپاره کړی ؤ. مگر نورو پوهانو نثر د الفاظو او عباراتو له مخه سره وپشلی دی او دا ډول ویش په نثر کی دادیانو له پلوه صحیح ویش معلومیږی، هغه دادی چی: نثر پر دوه ډوله دی یو ساده بل فنی، یا یو طبعی او بل کسبی.

**۱ = ساده نثر:** عبارت له هغه ساده او اسانه عباراتو څخه دی چی د عمومی خلکو

د ۳۷ مخ پاته

او کوم شی چی انسانانو ناممکن بللې دی ممکن کړیدی.

هر څو نه چی ده د علمی مقام په باره کی خبری وکړو بیاهم استو کولای چی ده د علمی او اجتماعی لوی والی څخه یوه ذره پر کاغذ بیان کړای سو.

خو افسوس چی ډیر ژر مرگ دا ځلیدونکی مرغلره او لوی نابغه یو وړی او د بشریت نړۍ ئې د علم او اجتماع له یوه لوی سړی څخه محرومه کړه. دتر ۷۶ کالو ژوند وروسته د ۱۹۵۵ کال د مارچ په میاشت کی ستر گی له نړۍ څخه پټی کړې.

بېژ به د بوه عادي او معمولي مطلب دپاره ولیکل سي او د ډېرو مرادفو الفاظو، تشبیهاتو، استعارو کنایاتو... څخه پاك وي. چې دا ډول نثر د معمولي خبرو سره څه توپیر نه لري او عموماً هغه وخت لیکل کېږي چې مطلب معمولي شی وي یا مخاطب عام وي.

۲- فني نثر: هغه نثر دی چې لیکوالی یې په اراده او وقت سره د هغه په عبارت، د الفاظو په اوډولو او د جملو په ترکیب کې کوښښ وکي چې به ډېر ښه او مؤثر ډول خپل مطالب د مخاطب په ذهن کې کښېنوي.

دا ډول نثر ته هغه وخت لیکل کېږي چې لیکوالی د کلام د ښایست یا د خپل انشائي قدرت یا د مخاطب د احساساتو د تحریك قصد ولري یا دا چې د موضوع اقتضاوي او ساده عبارت او معمولي الفاظ د هغه مطلب د ادا تر عهده وتلای نه سي.

لنډې دا چې د پښتو ژبې نثرونه په هره موضوع کې چې وي که علمي وي که تاریخي یا قصصي... ټول د هغې ژبې ادبیات بلل کېږي او د هغو څخه د ژبې د ویونکو علمي، ادبي فلسفي او اخلاقي افکار ښکاره کېږي. دغه ډول د پښتو ژبې متلونه او وږده یا لنډي ټکلونه او... هم د ادبیاتو په چوکاټ کې راځي او ښه ادبي قیمت لري.

## د نثر نمونې:—

۱- محمد هوتك د پټې خزانې مؤلف وائي:
زما پلار هسې نقل وکا چې په کندهار کې د رافضي ګرګین خان جور او ستم، تر حده تېری وکا او خلګ د خدای د ج، هسې ځني په عذاب سول چې په مرګ خوښ سول، نو دوی په کوګران کې مغفور رحماني، بزرګ په صمداني حاجي میر-خان هوتك ښالم خپل نه ولاړل او له هغه څخه ئې چاره د کار طلب کړه. او ټولو وویل: هر ډول چې دی وائي: هغسې کړيء هغه مغفور یوه ورځ تر ماښامه له نورو پښتنو خانانو او مشرانو سره مصلحت وکا، او هسې ئې ترون وکړ، چې ظالمان مړه کړي او ځانونه له جور و ظلمه وژغوري، په پای کې حاجي میرخان علیه الرحمه وویل: راسی چې عبدالرحمن بابا قدس سره هم و پوښتو، چې د ده د دیوان ئې خلاص کا، هسې شعرونه ؤ، بیت:-

زه مکتوب غوندي به پټه خوله ګویا یم
خاموشي ځما تېری کا تر غوغا ځما
کښت د عشق به توده زه مکه امان چېری
سمندر یو به چې زېست کا په صحرا ځما

چې دغه بیتونه ئې ولوستل هغه مغفور حاجي ولس ته وویل: چې د ظالمانو کار تمام دی. اما اوس د ستې خاموشي بهتره ده. ټول و په پټه خوله دا کوښښ کړو چې ظالمان ورك کړو سی. چې مناسب وخت راسي نو به زه برتاسې ژغ وکړم هغه وخت باید ټول تیار یو او ظالمان له وطنه وباسو. [پټه خزانه]
بله نمونه چې د کابل مجلې څخه ئې ټا کو.

## ادب واسطه ده که غایه؟

ما د مخه هم لیکلي ؤ چې ادب د علم په مقابل کې آله او واسطه ده نه غایه! یعنې د علم له پاره موږ ادب

نه ادبیږ او بالذات بخپله دیوه
ملت داوږد ژوند دپاره کافي نه دی.
زه بخپله دشخصي عقیدې په اندګاه
تر ډېره ځایه ددې خبرې مل یم.

او ښائي چې ځینې نور خلک هم
ملګري ولرم خو داهم وایم:
چې ځینې خلک به مخالف هم
وي او نه به غواړي چې ادب نش

دآلې او واسطې په نوم وپېژني
په اجتماعي ژوندانه کې ډېر
شیان شته، چې دثقافت په تشکیل
کې برخه لري، خو په لومړي

کتنه دومره مهم او د غور وړ
نه ښکارېږي اما کله چې یو
ملت داوږد ژوندیا په یون او دتکامل
په سیر کې هغه پوړ ته ورسیږي

چې باید هغه شی ولري، نو هلته
ټولو نه د کوم عنصر اهمیت
څرګندیږي او لزوم ئې اظهارته
ورځي، او د ټولو مخه هغې

خوا ته ګیږي.
ښائي چې ادب هم دغسې دثقافت

د بشپړولو او تکمیل دپاره
خپله موقع او مساعد فرصت په

اجتماعي ژوندانه کې غواړي
او داهم ښائي چې کوم وخت

ادب دیوه ملت دپاره دومره
اهمیت ومومي، له واسطې والی
څخه دغایې او اصلي مقصد مقام
ته هم ورسیږي، مګر دا په

ظروفو او محیطو او ولسو او
عصرو پورې اړه لري.
بله خبره داهم ده چې ادب یو
جامع عنوان دی چې ځانګې

او شعبې او ډېر اړخونه لري.
که له یوه اړخه څخه ورته
وکتل شي، بېله دې چې نشه
واسطه ئې وګڼو، بله معنی نه

لري، اما که ډېر دقیق شو او د
ادب په ځانګه کې ځینې نهائي
او وروستنۍ خواوې وپلټو
دلته به نو داهم رانه ونه ځلیږي

چې ادب یوازې او نشه واسطه
نه ده، بلکه کله، کله غایه هم
ګڼدای شي.
موږ چې څه لیکو، باید یو څه شی

کې غور کوو او څېړو ئې، دا
زموږ لیکنه، څېړنه، ګڼنه به

مخصوص ډول وي او غالباً مو
عینکه هم اوسنۍ عینکه وي

حقایق من حیث حقیقت نه پلټو
بلکه د خپل احتیاج او اجتماعي

اوضاع او له امله ئې څېړو.
ډېر حقایق په پټه پرته وي، چې
هغه دلته او په دې چاپېر کې
نوي رنګ مومي او ځان محیطي

کوي نو ادب هم تر دغه قانون
لاندې دی، او موږ چې څه پکښې
وایو، یا یو څه پرلیکو د خپلو
محیطي عینکو څخه به ئې وینو.

ما وویل: چې ادب واسطه ده
نه غایه، دادعوه مې هم محیطي
وه، ممکنه ده چې حقیقت به
بل وي او زما تر لیدنې به قوي

او حقیقي لیدني او کتني نوري
هم وي خو زه له خپله چاپېره
درنه ګوریم هغه له خپله ځانه
درنه وایم.

هو! هر چاپېر او هره جامعه
[ځان] لري یعني لکه د یوه
سړي د ځان له پاره چې ډېر
لوازم شته دغسې هم د جامعې

د ځان له پاره د هر عصر لوازم
او اړتیاوي بیلې دي.

د یوه ابتدائي ملت له پاره ادب
ځکه واسطه ده چې هر لومړنی

ولس د اجتماعي تعامل او تفاهم
او هم د علم د زده کړې له پاره

بوي [ژبې] نه اړوي. ځکه
چې ژبه هر کله تر ادبي اصولو
لاندې موجودېږي او هم ئې
دغه ادب پالي، نو که موږ علم

او اجتماعي ارتقا هدف او مقصد
وبولو، ښائي چې بیا ادب د
واسطې حکم وکړو.
مثلاً زه غواړم چې د طبیعیاتو

یو کتاب ولیکم دا کتاب تر
هغو نه شم لیکلای، څو زه داسې
ژبه و نه لرم چې ټول مطالب
ښه ښکښې ځای شي او هم په داسې

ډول څرګند شي چې نور ئې
له ویلو استفاده وموږي او د هغه
علم په مقصد پوه شي.
دغه ژبه ماته ادب راښئي، او

ادب کولای شي چې په یوه ژبه
کې دومره استعداد مینځ ته
کړي چې مثلاً ریاضي یا کیمیا
په ولیکم نو هر کله چې زه د

ژبې بالغه کوم برادبي قواعدو
بهئې برابره وم، د واضح او

فصیح بیان یا نګه به ښکښې
پیدا کوم دا ټوله د [پوهراو]

درباره دي نو ځکه په ابتدا کې
ادب نشه واسطه ګڼم.

اما ښائي چې زموږ د ملت په
عمر کې داسې ورځې هم راسي
چې ادب به نشه واسطه نه وي
او موږ به ئې بخپله هم غایه

ګڼو.
ښه! اوس چې خبره داسې
شوه، نو:

## ادب ګله غایه ګڼږي؟:

دا خبره د پېغمبر او هم مشکله
ده، ښائي چې ماته ئې ځېړنه
او سپړنه هم ګرانه وي خو بیا هم
د قلم په ماتولو که چې د زړه

خبرې راڼلای شي، زه به ئې
ولیکم: که په اند د ډول ووایم
نو ښائي زما مقصد په دغو الفاظو
کې ځای شي [ادب چې د صنعتي

او میکانیکي دورې څخه تېر
شي] او بخپل جوهري کیف له
ډېرو اعراضو څخه مجرد شي
هلته نو غایه ورته ویلای شو.

دا خبره هم لنډه ده او ځېړنې
ته اړه ده زه ناچاره یم چې لږ

څه شرحه ور کړم.
د مخه مې وویل: چې ادب د

واسطې والي په دورو کې د
حسن بیان او فصیحې وینا له

یاره استعمالیږي او ادبي علوم
ټول ئې او بلیغې ویناوې واسطه
وي.
ادب په لومړۍ او دویمه دوره

کې د ایضاح، حسن تفاهم، بلیغ
کلام، تاثیر، تهیج، شورونې
پاڅونې او ویښونې له پاره
[آله] وي.

که یو خطیب وغواړي چې
خلک بخپله وینا ویښ کړي
او ورته ئې پاڅوي نو دی په خطبه
کې ادبي سحر ګډوي او د

خلکو پر روح اثر اچوي.
که یو لیکوال وغواړي چې په
خپل لیک سره جامعه د ارتقا
وخوا ته بوزي نو دی د خپل

عمیق او ژور اثر و نه له ادبي
اصولو څخه اقتباسوي او د
ادب په برابره خپل کلام ته
اثر اغیزه او ښکلا ور کوي.

په دغو لومړو دورو کې خپل
[آلیت] او واسطه والي شانې

او کورت [غایه] نه وي.
مګر ادب چې هر څو مې اوده پېږي

له آلیت څخه تجرد مومي او له
عرضي کیف جوهري ادول ته

رسیږي .

دا لومړۍ درجه چې ادب غایه والي ته رسوي او له واسطه والي څخه ئې پاکوي هغه وخت دی چې یو ادیب د تصنع او میکانیکیت له نړۍ څخه ووزي او بالذات [ادب] ته مخه کړي او د سوچه تخیل او د فطرت او وجدان په جذبه او شیوه یو څه میدان ته راوباسي د مثال په ډول وایم چې په پښتو ادب کې د خوشحال حمید او نورو ډېرو ادباؤ آثار [آلي ادب] او واسطې دي . دوی د ادبي میکانیزم او صنایعو څخه کار اخلي او [ادب] ئې بالذات من حیث هو هدف نه دی. اما د رحمان بابا ادب بالذات غایه ده او مقصودي ادب دی ځکه چې دلته هیڅ میکانیکي تصنع او عروضي کیف نه وینو .

دغسې هم که له دغې خوا یاد شو ادب ته وګورو د [حافظ شعر] غایوي کمالات شو او د [خاقاني] او [بیدل] اشعار نش میکانیکي او وچ د ارګو څخه نوزلي اشکال دي .

په بل عبارت باید ووایم چې [غایوي ادب] تل له وجدانه او زړه څخه الهام اخلي او د روح له تریو مراندو سره اړه لري د زړه له چینې څخه لکه رڼې اوبه داسې بهیږي .

او د فطرت رنګ او خوند ئې تل ساتلی وي مجازي ئې هم طبیعي او فطري وي له روحه سره کلکه علاقه لري د ادیب زړه ئې په کلماتو کې نغښتی وي .

اما [آلي ادب] له مادي حظوظو څخه تراوش کوي د نړۍ میکانیکي رنګونه پکښې ښکاري یعنې دلته له سترګو څخه کار اخیستل کیږي او هلته د زړه له بصیرته .

دلته له غوږو او ظاهري حواسو څخه کار اخلي هلته له باطني او وجداني او فطري استعدادو څخه .

دا په ماده او مادي مظاهرو اړه لري هغه په روح او فطري خصوصیاتو .

یو بل مثال به د اوسني ادب له پلوه هم درته ووایم: په اوسنۍ ایشیا کې موږ دوه ډېر معروف ادبا پېژنو، چې دواړه د هند دي، یو مرحوم علامه اقبال او بل رابندرانات ټاګور دی که د دوی ادب ته له دغې خوا تحریر شو، او فکر پکښې ووهو نو ښکاري چې یوځیله دارانه ښکاره‌سي چې دا لومړی دا آلي ادب او دوهم دا غایوي دی .

د مقالې په پای کې باید دا خبره هم ښکاره‌بانه نه‌سي، چې د ادب لومړنۍ او وسطی او عالي درجې چې ما دلته وویلې، دا دغسې مراتب تعابیر نه دي، چې باید ضرور هر ادیب دغه درې مراتب طی کړي، بلکه دا چې یو ادیب ته موږ د نهائي درجې حق ورکړو، ښکاري چې دې فطرت په دغه درجه کې اچولی وي او لومړۍ او وسطی درجې ئې نه وي لیدلي .

دغسې هم د یوه ملت په عمر *

بناغلی عبدالرحیم «ننګیالی»

له هرات څخه

# څه ولیکم

وړی حیرت یم نه پوهېږم څه مضمون ولیکم
د بېکاری د ژوند عنوان نه په طاعون ولیکم

چې سرمایه کړی ذخیره په کار ئې نه اچوی — څه فرق کوی چې د هغه لقب قارون ولیکم
څوک چې د عالم په ډېره کړی د افکارو تنویر — سر مې ترچارشه عطارد به ئې مادون ولیکم
سرتور چې کرزی چینګ کاکل ئې وی بې‌بهره د ادب — داسې زلمی ته به خالي کوټ و پتلون ولیکم
کنترول چې نشي په ښکاره د ول کوی تجاوز — دا حقیقت به نه د بې‌سیم پر تیلفون ولیکم
د مرکب جاهل خر نه کرزی په زور د حکمت — که په زر واره فلسفه د افلاطون ولیکم
نه کړی تاثیر پر سنګدل زړه د شیرینی لیلی — تول به دا متن که د فرهاد او د مجنون ولیکم
تعمیر د عمر د ظالم وراتوی نسل په ژړا — د یتیم اوښکو ته سیلاب او که جیحون ولیکم
که په دې پوه شم چې نسیم ئې غوږ ته وړی د دلبر — او سوی چیغې به زه د ډېری د پېلتون ولیکم
قلم چې ونیسم په لاس ګوتې مې شي په کباب — له رغه پوه شه زیاتی څه حال د ژوندون ولیکم
د یار وصال پسې پوه سی می پسه مقطر د لبو — د عشق نارو غه ته به دا واکسیناسیون ولیکم
ګل د غاټول ورځخه جوړ شي پر لمن د بیاض — هره قطره چې زه د زړه په شو اخون ولیکم
په فیض د روح د هراتي پیر «ننګیالیه» غواړم — چې موفق شم پر مطلب کلام موزون ولیکم

---

* کې ښه ئې چې پوه ئې ادب امری پیدا سی او یو بل ادب دی ور وسته وزېږی، د غایوی ادب پیدا کېدل او اسی ادب زېږول د فطرت کار دی.

داسی ادب د فطرت په غېږ کی پالل کېږی او د فطرت له استعداد و څخه برخې مومی. ښائی چې مکتب او مدرسه داسی څوک ونه روزلای سی.

علم او فلسفه او او منطق او و یل هم د داسی ادب دپاره ضرور نه دی ښائی چې پخپل غایر ظر د فطرت د پر اسرار کشف کړی، اما دی به فیلسوف نه وی. ښائی چې تر ډېر و د مدرسې راوتلو علماو ی پوه وی او د خپل وجدان او ضمیر په رڼا د ډېری تیاري رڼی کړي. دوی د حافظ په قول او ست نه وی کړی له مکتبه نه وی راوتلی خو «به غمزه مسئله آموز صد مدرس شد» مصداق ئې او دوی الهام د فطرت له پلمې اخلي څخه وي.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR A.M 'KARZI'

(FEBRUARY) 1963

GOVERNMENTAL PRESS